# د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم : پښتون قامی وحدت
لیکوال : محمد افضل خان
د چاپ کال : نومبر ۱۹۹۶ ع
چاپ کوونکی : ملت ایجوکیشنل پرنټرز لاهور
بیعه : ۴۰
خورونکی : پښتونخوا پبلی کیشنز پېښور

د انټرنټ پر مخ کمپوز او ترتیب : نسیم ستوری

# تړون

د پښتون ځوان نسل او هغه ټولو باشعوره ليکوالو ، اديبانو، پوهانو، سياستمدارانو او خواري کښو پښتنو په نوم ځوک چې د پښتون قامی وحدت لپاره هلې ځلې کوی.

محمد افضل خان

# بسم الله الرحمن الرحيم

که په زمکه نظر واچولی شی نو چیرته لوړ دنګ غرونه دي ، چیرته د غرونو په سرونو واورین پټکی دي ، او چیرته ئي ځان په شنو دوشالو کې پټ کړی دی ، چیرته په غړمبار روان سیندونه دی ،او چیرته سردرې ، ځائې په ځائې پکې سمندرونه ، دشتې ، هوار او پراخه میدانونه دي او چیرته چې ورشو ګانې او شاړې شودیارې په ظاهره د زمکی طبعی خدوخال هم دی او د آب و هوا د ځرنګوالی عوامل هم دي خو ترشائې په فطری ډول یو عظیم الشان مقصد هم پروت دی.



که لږ په غور سره وکتل شی نو د زمکی دغه طبعی خدوخال د مختلفو جغرافیائی وحدتونو ځرګندونه کوی. چیرته د یو جغرافیائی وحدت تړون داسی دی چې لوړ ، دنګ او اوچت غرونه ئې د یو سرحد او پراخه سمندر ئې د بل سرحد بندیشونه ښکاره کوی. چیرته د یو هیواد یا جغرافیائی وحدت په یوه او بله غاړه ژور، لوئی او غړمبیدلی دریابونه دی ، او چیرته پراخی صحرا ګانې او دشتونه د جغرافیائی وحدت حدونه په ګوته کوی ، غرض

د فطـرت دغـه غوښـتني د جغرافيـائی وحـدت پـورې محدودې نه دي. خبره نوره هم په مخه ځی د جغرافيائی وحـدت د زمکـی د جوړښـت او نـورو ډيـرو عواملـو پـه اشتراک عمل يوه خاصه ژبه او کولتور وجود مومی. دغه ژبـه او دغـه کولتـور پـه ډيـره اوږده مـوده کـې د هيـواد جغرافيـائی خدوخال نه خپل وجود پيـدا کـوی. شريک کولتور خلق راغونډ کړی. غونډه، ناسته پاسته، دود، دستور پيدا کوی. داسی ورو، ورو په غير شعوری ډول يو کولتـوری وحـدت پيدا شی. چې کله دغـه کولتـوری وحدت په جغرافيائی وحدت پورې خپلی اړيکی مضبوط کړی. نو خبره نوره هم په مخه لاړه شی، فطرت په دغه جغرافيـائی وحدت کې د اوسيدونکو د ټولـو ضـرورياتو بندوبست کوی. او د پيداوار منـابع د ولـس د ضـرورياتو سره سمې موجودې وی.

ددغـه منـابعو ادراک او ضـروريات چـې سـره يـو شـی نـو اقتـصاد ميـنځ تـه راوړی. د قـامی او انفـرادی شـتـه منيوتـصور پيـدا شـی پـه ټولنـه کـې اقتـصاد خپلـې جـرړې



ددی سره په ځنګ کې یو بل حقیقت هم موجود دی. چې د تاریخ پاڼې پرې په تواتر سره ګواهي کوي. هغه دا چې هر کله په یو فطری جغرافیائی وحدت کې د بهر نه ګوتې ووهلی شي. یا ددغه جغرافیائی وحدت حدونه د فطری حدونو نه پرته په بلې طریقې سره تشکیل شي نو شخړې پیدا شي. «نیشنل ازم» هم ددغه کشالو عکس عمل ته

د دغه بحث سره سم چې مونږ د نړۍ په نقشه نظر واچوو نو هر ځای چې قامونه پراته دي دوی خپل تاټوبی لری او د دوی په دغه تاټوبی او قامی وحدت کې چې جابر قوتونو تبدیلۍ راوستې دی ، د پیړو پیړو جبر او غلامۍ هم د دوی د ذهن نه دغه تړون نه دی ویستلی. او چی کله ورته موقع په لاس ورغلې ده. دوی خپل قامی وحدت په ځای کړی دی ، لکه څنګه چې په پیړو وروستو جرمن ځان یو ځای کړو. او دغه رنګ په مشرقی یورپ او وسط ایشیاء کې قامی وحدتونه په ځای کیږی. په دی تناظر کې دا ګورو چې زمونږ د کتاب د موضوع سره سم د پښتون (

د بشري ارتقاء ماهرين په دې خبره متفق دي چې انساني
نسل د مينځنۍ آسيا نه خور شوی دی. د بشريت په بابله
دغه بيان د تاريخي شواهدو نه ثابت دی. د برصغير او
وسطی ايشياء تاريخ د سکندر مقدوني نه شروع کيږي.
او د سکندر په وخت کې د پښتون قام په اوسني ټاټوبي
کې موجوديت د معلوم تاريخ واضحه حقيقت دی. خو
ددی نه هم ډير وړاندې يعنی خواو شا څلور زره کاله
مخکې په ويدونو کې د «پکت» په نوم د يو قام او د هغه د
معلوم ټاټوبی ذکر موجود دی. هم دغه راز په اويستا کې
د «پښت» او «ښند» او بخل (بلخ) د يو قام او د هغه د
جغرافيائی وحدت ذکر موجود دی. دا هغه زمانه وه چې
قامونه د ارتقاء په ابتدائی دوره کې وو او نقل مکانی
عامه وه. د قوميتونو د جوړيدو هغه تصور لا مينځ ته نه
وراغلی چې جديد او اوسنی تصور پرې ولاړ دی. د دغه
خانه بدوشۍ په دوره کې د مينځنۍ اسيا اوسيدونکی
چې په تاريخ کې د «اريا» په نوم مشهور دي، د يورپ او
هند خواته وخوزيدل ددوی يوه حصه د سليمان غر يا

د پښتون دغه ټاټوبی په مختلفو وختونو کې په مختلفو نومونو یاد شویدی. لکه اریانا ، خراسان ، افغانستان ، روه او داسې نور. نامتو یونانی جغرافیه دان «استرابو » په ۲۴ ۰ عیسوی کې د اریانا دحدونو په بابله ویلی دي چې دا په ژبه قائم وو. هم دې خاورې ته احمد شاه بابا پښتونخوا ویلی دی فرمائی:



ستا د عشق له وینو ډک شو ځیګرونه
ستا په لاره کې زلمی بایلی سرونه
تا ته راشم زړګی زما فارغ شی
بې له تا مې اندیښنې د زړه مارونه
د ډیلی تخت هیرومه چې رایاد کړم
زما د ښکلې «پښتونخوا» د غرو سرونه
که هر څو مې د دنیا ملکونه ډیر شی
زما به هیر نه شی دا ستا ښکلی باغونه

د رقيب د ژوند متاع به تار په تار کوی
چې په تورو پښتانه کا ګذارونه
د فريد «۱» او د اشرف«۲» درو به بيا شی
چې زه وکاندم په هر لوری تختونه
که تمامه دنيا يو خوا ته بل خوا ئې
زما خوښ دی ستا خالی تش ډګرونه
احمد شاه به دغه ستا قدر هير نه که
که ونيسی د تمام جهان ملکونه




---

(حواله پښتانه شعراء لومړی حصه)

۱ : فريد خان د شيرشاه سوری اصلی نوم

۲ : شاه اشرف نامتو پښتون حکمران د بابا هوتک لمسی چې د افغانستان سره ئې د ايران او اصفهان ځنې علاقې په خپل حکومت کې شاملې کړې وې

د احمد شاه بابا نه ډير وړاندې دې خاورې ته بابا هوتک په خپل يو نظم کې هم پښتونخوا ويلی دی .
فرمائی :

غښتليونـنـګ کړي د امـو واردی
مغـل راغـلـی ، پـه تـلـوار دی
پـه پښتونخوا کـې ، جـوړ نـاتـار دی
پـه کـلـی کـور بانـدې مغـل راغـی
هـم پـه غـزنـی هـم پـه کابـل راغـی
ای د مرغـیٖ« ۱ » غښتليـو راشئ
پـه نـنـګ ولاړ د پـښـتـونـخـوا شئ
تـوري تـيـرې غـشـی تـر مـلا شئ
پـه کلـی کـور بـانـدې مـغـل راغـی
هـم پـه غـزنـی هـم پـه کابـل راغـی



---

« ۱ » غوره مرغیٖ يا غوره مرغه

لکه څنګه چې دا خاوره په مختلفو وختونو کې په مختلفو نومونو يـاده شـوې ده هـم دغـه رنګـه ددې تـاټوبی اوسيدونکی هم پـه مختلفـو نومونـو يـاد شـوی دي. چې ورکې پښتون ، افغان او پټان معروف نومونـه دي ، لفظ

د وسطى ايشياء او سيدونکو «پښتانه» په افغان بللى دي
. د نوؤ نسلى او لسانى څيړنو په رڼا کې چې په سر کې ئې
مشهور ناروېجى پښتو پو هاند «ګيورک مورګن ستيرن»
دى. پښتانه د هغو ساکانو يوه غوره څانګه ده چې په ۲۵۰
قبل مسيح کې ئې د ساکستان (سيستان) نه تر کشميره
يوه لويه امپراتورى جوړه کړې ه.
د افغانستان ټول قامونه د شهريت په لحاظ افغانان دي.
چونکې افغانستان پښتنو خپل ټاټوبى ګڼلو ځکه چې «
ميرويس نيکه» او «احمد شاه بابا» په يو انتظامى
وحدت کې اوپيرلو. او په افغانستان دوه نيم سوه کاله د
پښتنو حکمرانى وه. په دې اساس هر پښتون افغان ؤ،
ولې هر افغان پښتون نه ؤ. ځکه چې په افغانستان کې نور
هم ډير قامونه وو. چې د شهريت په لحاظ افغانان وو خو د
نسل په لحاظ ازبک، تاجک، هزاره، نورېستانى او
داسې نور ؤ. د برصغير خلقو پښتون په پټهان ياد کړيدى.
چا وئيلى دى چې پښتون اول په پټنه باندې حکومت جوړ

د پښتنو د نسل په باره کې هم د مورخینو د رایو اختلاف
دی. یوه ډله وائی چې پښتانه د بنی اسرائیلو د هغه د
ولس قبیلو اولاد دی چې د بابل نه راوتلي وي.
ددې شجرې وړومبی راوی « نعمت الله هروی » دی چې د
مغل باد شاه جهانګیر په دربار کې وقائع نویس ؤ او «
مخزن افغانی » نومې کتاب ئې لیکلی دی. ددی نه
وړاندې ددې نظریې څرګندونه په « افسانه شاهان » نومې
کتاب کې شویده او پښتنو قدیمی مورخینو د نعمت الله
هروی نظریه خپله کړې ده.
سراولف کیرو او خان عبدالغنی خان د دواړو د تصانیفو
سر خط « دی پټهانز » «The Pathans» دی. دوی ددې نظرئې
سره اتفاق نه دی کړی چې پښتانه بنی اسرائیل دي. بلکې
ددې دواړو په خیال پښتانه د هغه ټولو حمله اورو (

په اوسنو ليکوالو کې عبدالحئ حبيبی ، بهادر شاه ظفر ، قيام الدين خادم ، کوثر غوريا خيل او ډاکتر مجاور احمد زيار پښتانه اريا ګڼې او بيا په اريايانو کې ئې ساکان ګڼې دا خبره ډيره ضروری نه ده ځکه چې زمونږ اصل موضوع د پښتنو قامی مسئله په ګوته کول او د تاريخ په حواله په پښتون ځوان نسل کې د خپلې قامی مسئلې ادراک پيدا کول دي. او د پښتنو پوهانو ، ليکوالو مورخينو او سياستدانانو پام دې مسئلې ته راګرځول دي. د انسابو ذکر په دې لړ کې د ضمن په ګوته راغلی دی. او هغه هم دا سې چې د قامی مسئلی تعلق د پښتون د ټاټوبی ، دده د لرغونی هيواد ياد هغه « Defined Territory » سره دی کوم ته چې مونږ د پښتون قام جغرافيائی وحدت ويلی دی.

د ټولو مفکورو د مطالعې نه پس دا حقيقت ښکاره ګند دی ، چې پښتون د مينځنۍ اسيا يو نامتو پياوړی او لرغونی

هندوستان ته تولي لارې د پښتون د خاورې د درونه تيريږي. صنعتي انقلاب نه وړاندې هندوستان د سرو زرو د مرغۍ په نوم يادېدو ، د دونيا په هر ګوټ کې چې هم چا قوت موندلی دی. نو د سرو زرو د مرغۍ د حاصلولو تکل ئې کړی دی. هندوستان ته درسيدونه مخکې دده تصادم د پښتون قام سره راغلی دی. د سکندر اعظم نه واخله تر شوروپانو پورې چې څوک هم دې خاورې ته راننوتی دي. پښتانه ورسره په نره جنګيدلی دي.



سکندر اعظم چې د ايران پورې ئې لوئې لوئې حکومتونه په مياشتو او ورځو کې ووهل خو چې کله د پښتنو خاورې ته راننوتو نو پښتنو په دې لنډه ساحه کې درې کاله بوخت وساتلو . د خيبر درې «اپردی» چې نن ورته اپريدی ويئلی شي. سکندر اعظم دوی ته خراج ورکړو . خو څو ورځې پس ترينه اپريدو دوباره د خراج مطالبه وکړه. ددوباره مطالبې او د خيبر د درې د جنګې کړکيچونو له امله د باجوړ په لار روان شو. د اسپ زو سره




شوروريان د يو سوپر پاور په حيث د شلمې صدۍ د جدويدو وسلو سره افغانستان ته راننوتل. دولس کاله پښتنو په جنګ کې بوخت وساتل او د شوروی اتحاد د خوريدو فوری سبب هم دغه مهم وګرځيدو. ويلی شی چې د پښتنو خاورې ته راننوتل اسان دی خو وتل ترينه ګران دي. پښتون يو داسې قام دی چې ده له شکست ورکول اسانه خبره نه ده او بيا په ده باندې شکست منل خو لا

بابر سره ددې چې د پښتون لښکر په مرسته هندوستان فتح کړی ؤ خو هغه ته دا معلومه وه چې دا قوت هغه ته خطر هم جوړیدی شی او دا خبره هغه خپل ځوی همایون ته د وصیت په توګه کړی وه ، چې د پښتنو نه یوه لحظه هم غافل نه شې. مغلو په سوونو کاله منظم کوشش کړی دی چې پښتانه په ذهنی لحاظ سره مفلوج کړی. کله چې د اکبر پوځ دامبیلې په مقام یوسف زو لوټ کړو د اکبر وزیر بیربل ئې ووژلو . سپه سالار ترینه په تیښته ووتو. دغه د اکبر باچا لپاره لویه صدمه وه. د هغه پوځ تاله ترغه شو . اکبر باچا سره د خپل دربار «نورتن» اټک ته راغی. هلته ئې کیمپ ولګولو او دا فکر ئې کولو چې ددې هزیمت یاماتې بدل به څنګه واخستی شی. او د حکومت وقار به څنګه بحال شی. د حملې او د پښتنو د خاورې د فتح کولو او هلته د مستقلو چاونو منصوبه بندی په دې دلیل و شوه چې پښتانه ماتې نه منی، نو مسلسل تصادم

دي عمل د پښتنو د معاشرې په سياسی او سماجی بنه کې
ورو ، ورو ډيرلوئې بدلون راوستو. د پښتنو اکثری
ادارې په اجتماعيت ولاړې وې او فيصلې ئې د جرګې له
لارې کيدې. د قام قبيلې مشر ، خان ، ملک به د جرګې له
لورې په قامی اتفاق سره ټاکلی کيدل. د مشر مهمان خانه
او د فيصلو ځائې چې په حجره يا ديرې ، به د ټول کلی يا
کم از کم د ټولې محلې شريکه حجره وه. د دې حجرې د
ميلمنو خرڅ، اخراجات او د خانۍ ملکۍ د تحفظ لپاره
به ټول قام شريک جايداد د مختص کولو داسې نورې
ګڼې ادارې په اجتماعی بنياد ولاړې وې. د مغلو د

ددې نه علاوه مغلو او خاص کر انګریزانو په ګنو ځایونو
کې قامي مشترک جائیداد خپل دغه نامزد خانانو ته د
جاګیر په توګه ورکړو او دغه شان په هغه معاشره کې چې
تر ډیره حده په قامي ورورولۍ او د برابرۍ په بنیاد ولاړه
وه یو رنګ جاګیرداري نظام قائم شو. که پښتون خپل
قامي وحدت حاصلول غواړي نو د معاشرې نه به
جاګیرداري نظام او مواجب ختمول وي.



په کال ۱۹۶۲ کې چې زمونږ په صوبه ( چې د فرنګي د
وخت نه په صوبه سرحد یادیږي ) کې د جمعیت العلماء
اسلام او نیشنل عوامي پارټۍ حکومت جوړ شو نو زه هم
پکې وزیر وم. ما په کابینه کې دا خبره وکړه چې تر څو د
پښتنو د وجود نه د نرۍ رنځ دا مرض نه وي ویستلی شوی
تر هغې پورې د پښتنو قامي وحدت نه شي حاصلیدلی.




د مغلو نه پس د پښتنو خاورې ته د لږې مودې لپاره سکهان رانوتل خو دوی لا استقلال نه وموندلی چې فرنګیانو ټول هندوستان فتح کړو . او د پښتنو خاورې ته



د ډیورنډ د کرښې نه بره ئې د «آمو» سره یوه بله کرښه راکښله د ډیورنډ د کرښې او د دغې کرښې تر مینځه علاقې ته ئې افغانستان ووې. د غلته ئې نه خپله پولیټکل محکمه جوړه کړه او نه ئې نور د څه قسم مداخلت کولو، دغه علاقه ئې د کابل امیر ته د حکمرانۍ لپاره ورکړه.

د افغانستان او زارروس په مینځ کې چې کله د سرحد ( دریا امو ) نښان دهی کیدله نو د افغانی وفد مشری « سائمن » نوم انګریز کوله . نو ظاهره ده چې دغه سرحد یا پوله په حقیقت کې د فرنګیانو او روسیانو تر منیځه سرحد ؤ . دغه شان ئې د افغانانو جغرافیائی وحدت ټوټې ټوټې کړو . په حقیقت کې دا سرحد نه ؤ بلکې د انګریز د ښکاره او غیر مرئی سلطنت حدونه وو .
د ډیورنډ د کرښې دواړه غاړو ته د خلقو په تګ راتګ د هیڅ قسم پابندی نه وه په یوه توته باندې ئې د افغانستان نوم قائم وساتلو . غرض ئې دا ؤ چې په نفسیاتی ډول د پښتنو ذهن د خپل هغه افغانستان نشت والی ته متوجه نه شی په کوم کې چې پښتون قام د افغانستان د نورو قامونو سره اوسیدو او سرحدونه ئې د آمو نه تر اټک پورې وو . نتیجه ئې دا شوه چې د تقسیم خلاف ردعمل په شدومد سره پیدا نه شو بلکې د « SlowPoisioning » یانې د وروورو ختمولو په انداز کې ئې اثر وکړو . دا فغانستان امیر اګر چې خپلو خلقو ته باچا ښکاریدو خو هغه ته دا

ددي جغرافيائی تقسيم سره ئې د مغلو د ماجبونو او د منصبونو منصوبه نه صرف دا چې بحال وساتله بلکې نوره ئې هم پراخه کړه. په دې وجه هغه قام چې په هر اړخ يو وحدت دی او د معلوم تاريخ د زمانې نه يو وحدت پاتې شوی دی که حکمرانی ئې خپله وه او که خاوره ئې د بل قوت تابع وه خو وحدت ئې تقسيم شوی نه ؤ. ددې ماجبونو ، منصوبونو د پاليسی او درې غبرګی سرحد د پاليسۍ په وجه ذهنی او جغرافيائې طور تقسيم شو. پښتانه ددې تقسيم په وجه د يو بل نه ډير نا خبره پاتې شو .او دوخت د تيريدو سره د يو بل نه نااشنا او بيګانه شول. جغرافيائی طور يو وجود په دريو حصو کې تقسيم کړی شو. او په هره حصه ئې يو داسې نظام رائج کړو چې هغه د بل سره څه مطابقت نه لرلو. چې ورکې د قبائلو نظام ډير عجيبه دی. چې د پاکستام د جوړيدو نه پنځوس کاله پس نن هم موجود دی. داسې نظام چې ورکې بالغ ته د ووټ ورکولو حق هم نشته. بنيادی حقو نه ئې غصب دی. عن تر دې چې د پولټيکل محکمې يو ورکوټی افسر د « ايف سی آر» لاندې د دوی ازادی تروړلی شی او جيل ته ئې ليږلی شی که پولټيکل محکمه د دوی کورونه وران

زه چې په کال ۱۹۹۳ ع کې د رياستی امورو او قبايلو وزير وټاکلی شوم نو ما يو بيان ورکړو چې قبائلو له به د بالغ رائې دهۍ حق ورکولی شی ،د صوبې په اسمبلۍ کې به ورله نمائندګی ورکولی شی. ما دا هم وويل چې قبائلو ته به ايف سی ار خلاف د اپيل حق ورکړی شی. نو د پاکستان د پولټيکل محکمې په ايماء قبائلی ملکانو او خاص طور سره د قبائلو د قامی اسمبلۍ او سينيټ ممبرانو داسې غوغا جوړه کړه چې د ملک وزير اعظمی زه وغوښتم او راته ئې ووې چې دا شپاړس ممبران به د حکومت خلاف او دريږی هسې هم زمونږ دا اقليتی حکومت په مخلوط ډول جوړ دی نو مونږ يانې حکومت ته به ډير تاوان ورسی. په جواب کې ورته ما ووې چې دا لار صحيح ده. ما چې کوم بيان ورکړی دی دا يواځې د « پښتونخوا قامی پارټۍ» بيان نه دی بلکې د پاکستان پيلز پارټۍ په انتخابی منشور کې هم دغه ذکر شته. محکمه يا وزارت د وزير اعظمې په صوابديد دی ماته

بل خوا د ډیورنډ د کرښې نه بره افغانستان کې چې کوم امير په تخت کښيناستو، دا د هغه قامی فريضه وه چې د خپل قام د ملی وحدت هلې ځلې ئې سمدستی شروع کړی وی. خو هغه ته دا معلومه وه چې هغه د فرنګيانو د لاسه په تخت ناست دی. او دا ورته هم معلومه وه چې که ما د قامی وحدت هلې ځلې خو پريږده که دا تصور مې هم وکړو نو بيا به زه امير نه يم. هغه ته د غه تخت د هر څه نه ګران ؤ، ځکه چې په تخت ځامنو پلاران او پلارانو خپل ځامن وژلی دي. امير د پښتنو د وحدت په ځائې د نفرت پيدا کولو کوشش وکړو، چونکې د ډيورنډ د کرښې نه بره




د ډيورنډ د کرښې د لاندې ګڼو پښتنو مشرانو د فرنګی خلاف يو اوږد او مسلسل جدوجهد وکړو چې د فرنګی نه ازادی حاصله کړی. خو زما په خيال بنيادی غلطی دا وشوه چې پښتنو د فرنګی نه خپله ازادی د پښتون قامی وحدت په بنياد ونه غوښتله چې د احمد شاه بابا افغانستان بيا قائم شوی وای. دی ټولو مشرانو د پښتنو ازادی د هندوستان په ازادۍ پورې وتړله. او دغه رنګ د

هاغه د رز چې فرنګی په يو وجود کې راوستی ؤ. په دې وجه نور هم زيات شو او درې د بره سل کاله وشو چې د يو جابر د عمل خلاف دومره اوږده موده پس هم يو توانا قامی تحريک پيدا نه شو. حالانکې دا تقسيم په ۱۸۹۳ ع کې د يو غاصيب د سازش نتيجه وه. او د غاصيب عمل هيڅ قيسم قانونی ، اخلاقی او آئينی جواز نه لری

د پښتنو خاوره د هندوستان حصه نه ده. دا د هندوستان او وسطی ايشياء تر مينځه پرته ده. پښتون په تاريخ کې چا هم هندوستانی نه دی بللی. د پښتون ټول عمر تعلق ، تجارتی او ثقافتی اړيکې د وسطی ايشياء سره پاتې شوی دی ، چې ددوی لومړی ټاټوبی هم دی. کوهـ هندوکش او د کوهـ سليمان لمنې ددوی مسکن دی. دوی ته علم د شمال نه راغلی دی د غه رنګ دا احترام هم شمال ته ورکړی دی. د فرنګی ددې کرښو نه وړاندې د دوی تجارت شمال کې د تاشقند ، ثمرقند او بخارا سره پاتې شوی دی. د انګريز د مملکت او تسلط نه پس اګر چې د

د پښتنو دا خاوره د ۵۵۰ قبل مسیح نه د مختلفو حکمرانانو د کورنو او مختلفو تهذیبونو د انتظامی تصرف لاندې پاتې شوې ده چې تفصیل ئې په دې ډول دی

.

۱ ــ د هاخا منشی کورنۍ : د ۵۵۰ ق م ن تر ۳۳۱ ق م پورې

۲ ـ سکندر اعظم ( یونانیان ) ؛ د ۳۲۷ ق م نه تر ۳۰۵ ق م پورې

۳ ـ د موریا خاندان : د ۳۲۳ ق م نه تر ۱۹۰ ق م پورې



۴ ـ باختری حکمرانان : د ۱۸۵ ق م نه تر ۹۷ ق م پورې

۵ ـ ساکان : د ۹۷ ق م نه تر ۵ عیسوی پورې

۶ ـ اینډوپارتین : د ۷ ع نه تر ۷۵ ع پورې

۷ ـ کشان خاندان : ۷۵ ع نه تر ۲۲۵ ع پورې

۸ ـ ساسانیان د ۲۳۰ ع نه تر د ۳۶۱ ع پورې

۹ ــ افتالیان ( د ساکانو نسل ) د ۳۶۵ ع نه تر ۴۵۵ ع پورې

۱۰ ـ ساسانیان (دویم دور) د ۵۶۸ ع نه تر ۶۴۴ پورې
۱۱ ـ کابل شاهی کورنۍ : د ۶۵۰ ع نه تر ۸۷۹ ع پورې
۱۲ ـ سفاریان : د ۸۶۱ ع نه تر ۹۰۰ ع پورې
۱۳ ـ هندو شاهی: د ۹۰۰ ع نه تر ۱۰۲۱ ع پورې
۱۴ ـ غزنویان : د ۱۰۲۱ ع نه تر ۱۱۵۰ ع پورې
۱۵ ـ غوریان د ۱۱۸۱ ع نه تر ۱۲۰۶ ع پورې
۱۶ ـ مغل خاندان: د ۱۵۲۶ ع نه تر ۱۷۳۹ ع پورې
۱۷ ـ هوتک : د ۱۷۰۹ ع نه تر ۱۷۳۵ ع پورې
۱۸ ـ دورانیان (سدوزی ، بارکزی ) ۱۷۴۷ ع نه تر ۱۹۸۳ ع پورې



پدې ترتیب په افغانستان باندې د پښتنو دریو کورنیو په مختلفو ادوارو کې حکومت کړی دی په دوی کې غوریان ، هوتک او دورانیان شامل دي.د غوری پښتنو په حکومت کې د افغانستان د غربی سیمو نه علاوه د سنټرل ایشیاءځینې علاقې هم شاملې وې.
میرویس نیکه چې د غلجو د کوم سلطنت بنیاد اینبودی ؤپه هغې کې د میرویس نیکه نه وروستو عبدالعزیز خان

د خپل تاټوبي نه بهر د پښتنو دريو کورنيو په هندوستان ډير اوږد حکومت کړی دی. دغه حکومت پرله پسې نه ؤ ،بلکې په مختلفو ادوارو خوردی.په دوی کې غلجيان ، لودهيان او سوريان شامل دي. د هندوستان د پښتنو کورنو د حکومتونو خاص خبره دا وه دوی د «روه» سره اړيکې قائمې نه وي ساتلي.ددوی د طاقت او حکومت زيات دارومدار په محلي قوت ؤ، چې ګله په دغه محلي قوت راټول او متحد ؤ ، په هند به ددوی حکومت دوام لرلو او چې به خور شو حکومت به د بل ؤ. په دغه پښتنو بادشاهانو کې «بهلول» او «شير شاه» د«روه» سره د تعلق ساتلو يو شعوری کوشش کړی ؤ، خو وخت مهلت ورنه

د پښتنو په زمکه چې څومره غير پښتانه حکمرانان راغلي دي. او حکومتونه ئې جوړ کړي دي. په دوی کې يوه خبره د توجه وړ ده او هغه دا چې دغه غيرو پښتنو حکمرانانو دلته داسې حکومت کړی دی چې د پښتنو په داخلي خود مختارۍ کې ئې لاس نه دی وهلی.



پښتون قام په نفسياتي ډول خصوصي کړه وړه لري. پښتو ئې ژبه او پښتونولي ئې د ژوند ضابطه ده. د ژوند د دغه ضابطې يانې پښتونولۍ ډيره په سختۍ سره پابندي کوي. جرګه، ميلمه، پالنه، پناه ورکول بدل او ننواتې د پښتونولۍ مظبوط بنيادونه دي. ميلمه پالنه د خپل توفيق نه زياته کوي. په ميلمه خوشحاليږي او ورته د خدای پاک رحمت وائي. پيژندګلو ميلمه له چې کوم

مشهوره واقعه ده چې د جنګ په دوران کې يو ژوبل زلمی د يوی پښتنې ابۍ کيږدۍ ته ساه نيولی ورننوتو او پناه ئې وغوښتله. زنانه پناه ورکړه. ساعت تير نه ؤ چې څه کسان کيږدۍ ته راننوتل او د پښتنې ابۍ نه ئې ددغه سړی غوښتنه وکړه. ابۍ انکار وکړو په دې اساس چې هغې ورله پناه ورکړې وه. سړو ابۍ ته ووې چې هم دا سړی ستا د دوو زامنو قاتل دی. ولې ابۍ پښتنه وه. بيا ئې هم په کلکه وويل چې که هر څنګه وی، ده له اوس ما پناه ورکړې ده او نه شم کولی چې له خپله لاسه ئې چا ته حواله کړم.« ۱ »

بدل د پښتنو په تاريخ او امروزه ژوند کې ډير لوئې اهمت لری مشهور متل دی چې « د بدل کانې په سمندر کې هم نه ورستيږی» بې شميره داسې واقعات شته چې د نيکه د مرګ بدل نمسی اخستی وی. پښتانه د بدو بدل اخلی او په ننواتې مړی هم بخښی ، ننواتې په اصل کې د خپل جرم يا خامۍ اعتراف کولو او د پښتونولۍ په اساس جرم

۱ ـ پشتون کون ؟ صفحه ۱۴۱ (پریشان ختېګ )

۲، MANNERSANDCUSTOMSOF THE AFGHANS BY PROF . DR MOHDALI



فیصلې په اجتماعی قبولیت کیږی. د جرګې فیصلې قامی بڼه لری. او هیڅ څوک د هغې نه د انکار جرات نه شی کولی. هغه شخړې چې نور قامونه ئې په خونړو جګړو هم نه شی حل کولی. پښتانه ئې په جرګه کې بغیر د څه شرو شدت نه فیصله کوی.

په تاریخ کې د جرګې ډیرې عظیم الشانه فیصلې موجودې دي. احمد شاه بابا ته د حکمرانۍ پټکی جرګې ورپه سر کړی ؤ. او څکه ئې ټول پښتون قام په شا ولاړ وو.

لکه چې مې وویل د پښتنو اکثر لوی او تاریخي فیصلې د جرګې د لارې شوي دي پښتون مذهب هم په اجتماعي ډول قبول کړی دي. که بدهـ مذهب ئې قبول کړو نو دغه مذهب او د هغې خدمت ته دومره مخلص وو چې دغه مذهب ئې د شمالي او جنوبي هندوستان د پولې نه هغه غاړه د تبت او چین سرحدونو ته ورسولو که اسلام ئې قبول کړو نو په خپله دغه من حیث القوم فیصله دومره ټینګ ودریدو چې دغه مذهب ئې د برصغیر هر ګوټ ته ورسولو. په انډونیشیا ، ملایشیا او چین کې د اسلام موجودیت دده د مخلصانه زیار باسنې نتیجه ده. په نفرادی او اجتماعي ډول پښتون ډیر زړه ور ، فراخ دله ، رواداراو د هر ډول لساني او مذهبي تعصب نه ازاد دی. د کولتوری رواداری مثال ئې دا دی ،چې په نورو جغرافیا وحدتونو کې دمیشته کیدو له امله ئې خپله ژبه او کولتور هم پریښې دی. د میا والی نیازیان، د قصور خانان ،د ازاد کشمیر سدوزیان او دروهیل کنډ پښتانه د مثال په توګه وړاندې کیدی شي.

پښتون یو خوش دل او خوش باش قام دی خو په عزت، نفس سر هم ورکوی خاص طور سره په کور دننه په خپل

دا خو يو ضمني بحث ؤ اصل موضوع ته راځو د سويت يونين د منتشر کيدونه پس په وسطی ايشياء کې يو ځل بيا لرغوني جغرافيائي وحدتونه د ازادو رياستونو په شکل کې راڅرګند شول کميونسټ تسلط په هر اړخ دا کوشش کړی ؤ، چې قامی حدبندی او قامی تسلسل له مينځه يوسی، په دی لړ کې ئې يو منظم کوشش کړی ؤ چې ددوی ژبه او نومونه خپلې لهجې ته راواړوی. ولی او يا کاله پس دا خبره ثابته شوه چې حقائق او فطری تقاضی که په بل شکل کې وی او که د قامونو د وجود په شکل کې وی ختميدلی نه شی. نن ټوله دونيا او خاص کر پاکستان د وسطی ايشياء ددی ملکونو سره تجارتی تعلقات مستحکم کول غواړی. او د وچې هغه تجارتی لار چې د فرنګی د راتلو نه وړاندې د برصغير او وسطی ايشياء په

د افسوس مقام دی چې په ځای ددې چې د پاکستان د
جوړیدو نه پس د پښتون قامی وحدت په لور چټک
ګامونه اخستی شوی وی. بالعکس د انګریز د لاس
راښکلې کرښه د دوو اسلامی ملکونو تر مینځه سرحد
وګرځولی شو. پاکستان یو تحریک ؤ. چې بنیاد ئې دا ؤ
چې مسلمان یو قام دی او غیر مسلم بل قام دی. په دی
تحریک کې دا هیچیرې نه دی ویلی شوی چې د فلانی
حده پورې مسلمان یو قام دی ، د پاکستان بانی
قائداعظم په دې حقله په ۱۹ فروری کال ۱۹۴۸ ع د
استریلیا ولس ته په خپل یو نشری تقریر کې او په ۱۷
اپریل ۱۹۴۸ ع کې په ګورنمنټ هاوس پیښور کې یوې
قبائلی جرګې ته دا خبره واضحه ټکو کې وکړه چې:

**WE MUSLIMS BELIEVE IN INE GOD, ONE BOOK THE HOLY QURAN – AD ONE PROPHET. SO WE MUST STAND UNITED AS ONE NATION, YOU KNOW THE OLD SAYING THAT IN UNITY LIES STRENTH. UNITED WE STAND , DIVIDED WE FALL.**

« مونږ مسلمانان په یو خدای (ج) یو کتاب قران پاک او
یو پیغمبر صلی الله علیه وسلم عقیده لرو. نو باید چې
مونږ لکه د یو قام متحد وسیږو تاسو دا پخوانی وینا نه

د قايد اعظم ددې وينا نه پس د ډيورنډ کرښه حدبندی نه شی جوړيدی ځکه چې لر او بر دواړه غاړو ته نه يوا ځې دا چې مسلمانان پراته دی بلکې د يو نيکه اولاد ، د يو کولتور او يوې ژبې خاوندان دي. ددې نظرئې سره سم پکار نه، بلکې لازمه وه چې د پاکستان حکمرانانو د افغانستان سره د څه قسم اتحاد او يو کيدو جدوجهد جاری ساتلی وی که د افغانستان حکمرانانو اعتراض کولی نو بيله خبره وه خو عجيبه داده چې د پاکستان حکمرانانو د ډيورنډ کرښه د افغانستان سره سرحدو ګرځوو دليل ئې دا ؤ چې د فرنګی نه ورته په ميراث کې پاتې شوې ده. دلته د علامه اقبال وينا ستاسو په وړاندې ايښودل ضروری ګڼم چې وړائی:

اسيا يک پيکر آب وګل است
ملت افغان دران پيکر دل است
ازفساد و فساد د اسيا

# درکشاد وکشاد اسیا

علامه اقبال وائي چې د ایشیا مثال د یو وجود دی چې
افغان ملت ورکې د زړه حیثیت لری. که زړه روغ وی نو ټول
وجو ( اسیا ) به خوشحاله وی او که زړه رنځور وی نو ټول
بدن « اسیا» به بې ارامه وی. که پښتانه ددې جوګه نه وو
او اوس هم نه وی چې خپل قامی وحدت تر لاسه کړی نو د
علامه اقبال د مفکورې تر مخه به پاکستانی حکمرانانو
دا لازمه وه او اوس هم ده چې د پښتون قام د ملی وحدت
د پاره هلې ځلې وکړی. ځکه چې د پښتنو په انتشار کې د
ټولې اسیا تاوان دی او ددوی په ابادۍ او صحت کې د
ټولې ایشیا خوشحالې ده.



زه دا منم چې د افغانستان نماینده په ملل متحد کې د
پاکستان د ګډون مخالفت کړی ؤ او د یو ګاونډی ملک
په حیث ئې ددې هیواد خیر مقدم نه وکړی خو د یو
شخصی نظام په خوا کې د یو جمهوری نظام قایمیدل به
هغوی د ځان لپاره ارو مرو خطر ګڼلو. ددې د پاسه باید
چې د پاکستان واکدارانو هغه بنیادی مفکوره په نظر کې
ساتلې وی کومه چې علامه اقبال پسش کړې وه. د

ایوب خان په وخت کې د غه منصوبه شاته وغورزولی شوه او د دواړو ملکونو ترمینځه بیا تلخی پیدا شوه. ځکه چې دواړه طرفه ته واکدارانو کې نه اد اهلیتؤ او نه جرات چې د انګریز د تقسیم نه ئې ګام اړولی وی.



د شوروی اتحاد د منتشر کیدو نه پس چې کله دوه پریزې نظام ختم او یو پریزې نظام مینځ ته راغی او امریکا د سپر پاور نه سپریم پاور شوه نو د «نیوورلډ ارډر» په نوم یو نوی تصور وړاندې کړی شو. د شلمې صدۍ تر اخره پورې انسان دومره ترقی کړې ده چې په خپل کره ارض کې ئې د کلونو فاصلې منتهونو ته راوستې دی. سپوږمۍ ته رسیدلی او نورو سیاروته د رسیدو کوششونه کوی. خو ددې هر څه باوجود انسان د ذهنی سکون او قلبی اطمینان




که صرف دومره فکر وکړی شی چې زمونږ دونیا اوس ډیره مختصر شوې ده چې د ګوټ ګوټ حال د هر چا په وړاندې دی نو پکار او لازمه ده چې ورسره یو عالمی تړون مینځ ته راشی او دا هر څه په پراخه سینه ومنلی شی. چې په دی دونیا کې وړو قامونو ته هم د اوسیدو د اسې حق شته لکه څنګه چې طاقتورو قامونو ته شته او دا چې دوړو قامونو د کولتور ، ژبې دودې یو پرامن او خوشحاله دونیا ته نن دومره ضرورت دی څومره چې غاوره قامونو



نن هم د دونیا په مخ ډیر قامونه تقسیم پراته دي. او د پیرېیو راسې هغوی د خپل قامی وحدت لپاره هلې ځلې کوی. چې د دونیا په قامونو کې سرلوړی شی. خو لا تر اوسه دغه واړه قامونه د وخت په شکنجو کې ښکیل پراته دی. په دوی کې پښتون قام هم دی چې درې د بر سل کاله وړاندې د یو غاصب د لاسه تقسیم شوی دی. او لا تر ننه تقسیم پروت دی د پاکستان د ازادۍ بنځوس کاله وشو او

بل قبایل دی نو روسره بل لفظ نشته چې کوم قبائل دی
چې شناخت ئې وشی. قبائل په نورو هیوادونو کې هم
شته، ولې هغوی هلته خپل نوم لری. خپله پیژند ګلو لری
ولې دلته د قبائلو نه خپل نوم شته او نه پیژند ګلو.
د پښتون قام یو حصه په بلوچستان کې ده چې د صوبې
تشکیل ئې په کال ۱۹۷۰ ع کې شوی دی. ظاهره ده چې په
بلوچستان کې به بلوچ اوسی، لکه څنګه چې پنجاب
کې پنجابی او په سندهـ کې سندهی اوسی. کله چې د
بلوچستان پښتون سرحد ته راشی نو ددې ځای پښتانه
ورته «بلوچی پښتون» وائی دغه کلمه په هغه دومره بده

ما وړاندې هم ذکر کړی دی او اوس یو ځل بیا په تکرار او تاکید سره ددې خبرې اعاده کوم چې تر څو پورې پښتون خپل قامی وحدت نه وی حاصل کړی تر هغې د پښتون قام مشکلات او محرومۍ نه شی ختمیدی او د یو قام د غړی په حیث دوی احترام نه شی ګټلی. که په پښتون کې لا دا سیاسی شعور او احساس دې حد ته نه وی رسیدلی چې خپل قامی وحدت تر لاسه کړی نو د دونیا هغه قامونه چې ځان ته مهذب وائی. خصوصی توګه هغه قامونه چې تقسیم درد ورته معلوم دی. په دوی ټولو دا لازمه ده چې د پښتون قام د وحدت به احیاء کې ددوی سره لاس وکړی په دې غرض چې د برصغیر نه تر وسطی ایشیاء پورې په دې

فطری وحدتونه چې په هر ځای کې تقسیم شویدی. نو تاریخ د خپل جبر د لارې د وحدت منزلونه ټاکلی دی. د یویشتمې صدۍ اغاز باید چې دا فرق راولی چې د پښتنو د وحدت مسئله د جبر په ځای د امن، برداشت، افهام وتفهیم په قامی رواداری او زغم تر سره شې نو په دونیا او خصوصاً دې سیمه کې به د امن او خوشحالۍ یو نوی دور پیل شی.

زه د رب ذوالجلال بې حد شکر ګذار یم چې ما د یو پښتون په حیث زپلی پښتون (افغان) قام ته دا مختصر شان پیغام وړاندې کړو. او پوره باورلرم چې د دې منتشر قام هر غړی چې هر ځای وی په هر حال کې وی او د هری پیشې مالک وی به خپل فکر او قلم د امن او مینې په لار د خپل قام د وحدت او تشخص د حصول طرف ته راوګرځوی او د دونیا ټولو مهذبو قامونو او انسان دوست

## پـــــــــــــای

خدای بخښلی فضل محمود مخفی صیب چې یو پیاوړی ، نامتو ، قام پرست شاعر او لیکوال ؤ ، هغه په زړه کې د پښتون دقام د منتشر وجود د بیا راغونډولو ژوندی ارمانونه لرل. د هغوی دا یو نظم د هغوی د قامی وحدت د ارمان ترجمانی کوی.



خاوندہ تہ ودانہ کړې زمونږ د یووالي حجره
یو ځای پکې د ځانه کړې د پښتون ډله خوره
یو زړه او یو شان ئې کړې
دي بیل او بیل بیلتون لره
کشمیر نه هرات هورې بلوچستان نه تر دورې
دا ټول پښتون دی هر چیری څه رنګې پروت ذرې ذرې
د یو وجود په شان ئې کړې
یه خدایه دا ذره ذره

لویو تـپو د پـښتـنو پـه غـره پـه سـم پـرتـو درنـو
نمسو دلویو پـرګـنـو راځـی چـې یـو شـو لیـونـو
یـه خـــدا یـــه ورانـــه کـــړې
ســـپـیـره بیـلــتـون لـره دیـره
د پښتون اول نـیـکـه خـواره نـمـسی دې یـو کـړه تـه
دا شـان ټـیـټ دی دوی پـه څـه خبر له یـو لـه بلـه نـه
یـه خـــدا یـــه ورانـــه کـــړې
ســـپـیـره بیـلــتـون لـره دیـره
« پښـتـو » زمـونـږ چـیـرتـه ئې ولې له مونږ بیرته ئې
زمـونـږه زړه ځـیـګـرتـه ئې زمـونـږ د قـام وزر تـه ئې
پـه مـونـــږه لا راســانـه کـړې
چـې مـــونـــږه شـــو یـو « کل » سره
زمونږد ملک نه دښمنان خدا یـه تـه لرې کـړې دا زمـان
په مونږه کړې زمـونـږه خـان زمـونـږ د قـام زمـونـږ د ځـان
رښـا زمـــونـــږه لـه ځـانـه کـړې
د پـــښـــتـــنـــو تـــوره تـــیـاره

